
(۱)

## ددې ګڼې مضامین





د کندهار د عمرانی فعالت په لړ کی د ظاهرشاهی واټ په لومړی برخه کی
د ښاروالۍ عصري ته‌ی ودانۍ شوی مغازې لیدل کیږی

# مات لوښی

ای محبوبې!
تا چې دګلانو لوښی ته لاس ووړ.
پدې لوښي کې نری درز څرګند شو....
اما هو، داسې ښکاره کېده لکه تاچې هیڅ لاس نه وی وروړی.

څکه چې له دې درز څخه دلوښي هیڅ ازانګه نه پورته کېده.
مګر دې نری درز ورځ په ورځ؛ سو که، سو که پټ تنګ کاوه خو څه مهال وروسته پر لوښي شاوخوا راوګرزېدی او څڅک او به څېيني بهېدی.

دې ګل هم او به وزېښلې څو وچې شوې....
او هیڅوك نه په پوهېدل؛ آه، لاس مه ور وړه دا مات لوښی دی.

په دا لوښی نه دی، زما خوږمن زړه دی؛ چې زړې، زړې چاودلی دی او ستا د محبت ګل پکښې شین دی.
خلک نه پوهېږی چې دا څنګه ...؟

مګر دا ګل زما د زړه په اوبو وده کوی زما د زړه درزونه زما مات زړه پټ، پټ ژړوی نو ګرانی محبوبې لاس مه ور وړه دا مات زړه دی.

کندهار

د ۱۳۴۷ لمریز کال د حمل میاشت

# بزګرا او مالداره وروره !

اوس چې د طبعي ناموس له دوه اود ستور له حکم سره سم ددې خاورنی کړه یعنی مځکې د بوډا تاریخ په پاڼو باندې یوه بله ورقه زیاته سوه او د ۴۷ کال په راتلو سره

د نړۍ د عمر یو بل کال شروع سو، دا موږ ته په الهام سره رابنيي چې د طبیعت له تحول سره سم د بشری ژوند په سير کې هم د نوی بدلون او تغیر شرایط لازمی او حتمی دی.

ګرانه بزګره او زړه ته نېږدې مالداره! ته چې د هری ټولنې د تولید پیاوړی عامل او لوی عنصر یې په تېره بیا د افغانی ټولنې اقتصادی بنیه چې ستا په همت ناکه باز و

باندې ولاړه ده او ته د دغې سیمې په ټولنه کې د اقتصادی هیرو او پهلوان موقف لری یوازې ستا د مړوند او لېچو برکت دی چې د هیواد

درماندې او پسماندې تر سره کولای شي.

اوس چې هم طبیعت او هم اقلیم ستا د کار او زیار د پاره د

کال تر نورو موسمو زیات مساعد او آماده دی د موقع څخه په استفاده سره د نوی کال په شروع کې د خپل یو کلن پلان په عملی

کولو او تطبیق هم شروع وکړی او دغه طلائی موقع چې په ضایع کېدو سره ئې بیا تلافی ممکن نده د هری دقیقې څخه اعظمی استفاده وکی.

بزګره وروره! د تېر کال د په لاس راغلو تجربو سره یو ځای پدې نوی کال کې نه یوازی دا چې ستاد سږ کال د کار او فعالیت حجم

باید زیات وی بلکې ستا د کار سیستم او له طبیعت څخه د استفادې په باب طرز تفکر هم ور سره بدل شی یعنی د یوې خوا په کار کی

د نوی زراعتی آلاتو او لوازمو څخه کار واخلی او د هغه د استعمال او ګټو سره ځان اشنا کړی او د بلې خوا څخه د انفرادی فعالیت څخه و اجتماعی حرکت ته میلان پیدا کی او د کوپرا- تیفونو او زراعتی اتحادیو په منځ ته راوړلو باندې د خپل کار په نظام کې نوی جنبش راولی څو هم مو تولیدی قوت زیات شی او هم مو د استهلاك په بازارو کې تولیدی مواد په مستقیم ډول عرضه سی که پدغه روحیه تاسو

نوی کال استقبال کړی واقعاً نو تاسو په نوی کال کې د موقع څخه په استفاده سره د ژوند د وجایبو او مسئولیتو د ادا کولو ادراك کړیدی او د زمانی سیر او جریان چې آناً په آناً تحول کې دی په صحیح توګه بهمو تعقیب کړی وی او شاید لدغه نه د رېدونکی کاروان سره سم قدم واخلی

په پای کی نوی کال تاسو ټولو بزګرو او مالدارو رونو او د افغانستان نجیب ملت ته د زړه له کومی تبریك وایم او پدغه کال کښی د دوی نېکمرغی او د ګران هیواد د ابادی او لوړتیا هیله کوم.

## پیغام

### انتقاد، ستاسو د عظمت اثبات کوی

که خلك بی موجبه پر تاسو انتقاد وکړی مه خوابدی کیږی ولی چې انتقاد هغه مبارکی او تعریف دی چې په مخالفه لهجه تاسو ته ویل کیږی خو که چیری انتقاد پر حق او واقعی وی نو په هغه صورت کې منعقد د یوه دوست په حیث تاسې و خپلو نواقصو ته متوجه کړی یاست او د دې پر ځای چې پر ځان ئې بده ولګوی د ابه ډېره ښه وی چې تر ممکنه حده د هغه په اصلاح پسې وګرځی.

ښاغلی دانشمند د طلوع افغان مدیر صاحب!

ستاسي را استولی د کندهار مجلې ګڼې ما ته رارسېدلې وې. که د دغه مجله ژوندی پاته سي، غنیمت ده.

د دې لیك سره یو تاریخي مضمون «زوړ کندهار» در واستول سو، چې په هغه مجله کې نشر کې ږ. په احترام

پوهاند عبدالحی «حبیبي»

د تاریخ ټولنې رئیس

---

کندهار: ځان سرلوړی او پیاوړې ګڼې چې د هېواد دلویو پوهانو او محققینو توجه ئې ځانته جلب کړېده. د ښاغلي پوهاند «حبیبي» مقاله چې د دوی له خوا د نشر له پاره په خاص ډول د کندهار مجلې ته وقف سوېده په ډېره مینه ئې خپلو لوستونکو ته وړاندې کوی.

# زوړ کندهار



د کندهار سیمې خورا زوړ تاریخ لري، د لته د هلمند او ارغنداو او ترنك درې زراعتي سیمې ځنګك پر ځنګك پرتې دي، او تر تاریخ د مخه لا هم د دغه اورشووې د انسانانو د لومړني مدنیت په لحاظ مساعدې وې، لکه

چې د شپېږ زرو کالو څخه یوه ډله کوچي انسانان په دغو اورشوو کې اوسېدل، او د دوی د مدنیت مختلف مظاهر د د پېراسي او مونږ-

ګك له غو نږیو څخه راوتلي دي. او که نوری تاریخي پلټنې وسي، ښائي په دغو سیمو کې نور تر تاریخ د مخه آثار هم پیدا سي. ځکه چې د دغې سیمې جغرافي وضعیت د اوبو او مځکې او اورشووو په سبب داسي دی چې د لومړنیو انسانانو له پاره د اقتصادي ګټو ځای کېدای سوای

ښائي چې ډېره له ارغنداو، ترنك او هلمنده ځنې نور کوچنی رودونه هم په دغو سیمو کې بهېدل، چې اوس وچ سوي دي، او د تاریخ پوهان وایي: چې د کشك نخود اوسنۍ وچه شېله پخوا یو لوی رود ؤ

چې دغه د ښتونه ئې او بول، او د لومړنیو انسانانو لپاره چې په مونږ ګك کې اوسېدل، ښه اود ګټې وړ اورشو وه.

داسي ښکاري چې تر میلاد زرکاله پخوا کله چې آریایي خلك افغانستان ته راغلل، نو د وی د افغانستان شمالي او جنوبي سیمې ونیولې، او په هغو کې د اراکوزی لویه وادی هم وه چې اوس دغه د ارغنداو او کندهار مځکه ده.

تر میلاد د مخه ۳۳۰ کاله چې مقدوني اسکندر د هرات او سیستان له خوا د اراکوزی سیمه هم ونیوله او یو ښار ئې د لته د اراکوزی د اسکندریې په نامه جوړ کی چې ښائي دغه زوړ کندهار به وي. او د دې ښار په وجه

تسمیه کې دوه روایته موجود دي:

اول دا چې، دا نوم به د ګندوفارس له نامه څخه راوتلی وي، چې دغه د پهلوا دخاندان پادشاه د میلاد په لومړۍ پېړۍ کې له سیستانه تر تکسیلا پورې

مسلط و، او د کندهار اوسنۍ سیمه هم دده د سلطنت مرکزي ځکه وه.

دوهمه نظریه، مستر بیلو انګریزي پوهاند ښکاره کړېده، چې په ۱۸۷۲م کال په کندهار کې و، دی د خپل کتاب Racis of Afghanistan په ۲۲ مخ کې وایي:

د پنځمې پېړۍ په پای یا د شپږمې پېړۍ په شروع کې هغه ګندار یوې قبایل چې هیرودوت هم د افغانستان په شرقي سیمو کې یاد کړېدي، د هپتالي قبیلو

د فشار په سبب د ارغنداو سیمو ته راولېږدېدل، او خپل نوم ئې دغه ښار ته ورکی، دغه واقعه تر ۵۲۰م وروسته واقع سوېده، ولې

چې پدغه کال چیني زایرسنګم-یان د بودا کشکول د پېښور په لوی معبد کې لیدلی و، او وروسته نو دغو کندهاریانو کشکول کندهار

ته یووړ، چې تر ۱۳۰۶ش پورې د زاړه ښار د سلطان ویس په مزار کې پروت و، او اوس د کابل په موزیم کې دی.

د کندهار نوم په اوومه میلادي پېړۍ کې هم و، او کله چې اسلامي عربي فاتحان د هجرت د لومړۍ پېړۍ په اوله برخه کې د سیستان او بست له خوا دلته را ورسېدل

نو د البلاذري عربي مورخ په قول دوی کندهار ونیوی، او د دې ځای د خلکو خولې او پوده ئې شونه و

چې دغه راز خولۍ د استقلال تر جنګه پورې لا هم په کندهار کې رواج وې، او اوس ئې پلمې.

دا د تعجب ځای دی، چې د اسلامي دورې په دوهمه، دریمه او څلرمه پېړۍ کې بیا د عربو او عجمو مؤرخان د کندهار نوم پدغه ځای کې نه یادوي، او پر ځای ئې رخج، کوهک، پنجوایي

او تګین آباد بولي، د غزنویانو په عصر کې دلته فقط د تګین آباد ښار یادېږي، او وروسته نو تر ۶۰۰هـ وروسته ګورو چې بیا دلته د کندهار نوم پیدا کېږي، او د تګین آباد نوم بېخي ورکېږي.

رخذ یا رخج خو د عربو په اصطلاح د دغې ګردې سیمې نوم و چې مرکز ئې پنجوایي تر اوسه هم سته، د کوهک نوم هم تر اوسه ژوندی دی.

زه داسې ګمان کوم چې د آلپ تګین یا سبکتګین په وختو کې به د کندهار نوم رسماً په تګین آباد بدل سوی وي. او دا نوم تر هغه وخته ژوندی و، څو د سبکتګین د اولادو شاهي په غزني کې وه. مګر د دې



د زاړه کندهار د نارنج د قصر بقایا

حدس لپاره تر اوسه کوم تاریخی سند نه لرو. خو په اوومه هجری سدی کی منهاج سراج جوز جانی د طبقات ناصری مؤلف کورټ د کندهار نوم نه اخلی او دلته فقط تګیناباد ښېژنی او دا هغه وخت دی، چی د ۶۲۰ه په حدودو کی د چنګیزیانو حملی پر دې محکه جاری دی.

مګر لږوروسته د ۶۸۰ه په حدودو کی سیفی هروی د تاریخ هرات لیکوال بیا دلته د تګین آباد نوم ښه اخلی، او د کندهار حصار ښه ګڼی، نو داسی ښکاری چی تګین آباد تر اوسنی کندهار لږڅه غربی خواته د اوسنی ګرماو او نهرسراج په سیمو کی واقع ؤ، او پر دغه مطلب باندی ما خپل ټول تاریخی دلایل پخوا د آریانا په مجله کی لیکلی دی.

په هر صورت د تګین آباد نوم تر ۷۰۰ه وروسته کورټ ورک سوی دی او کله چی امیر تیمور دغه محکی نیسی، نو په ۷۸۵ه کال امیر حاجی سیف الدین د کندهار فتح ته ځی او ددی ځای حکومت امیر سیفل کندهاری ته سپارل کیږی، چی دغه مطلب هم د مجمل فصیحی لیکوال ضبط کړی دی، او بیا د شراف الدین یزدی له ظفرنامی څخه

ښکاری، چی د ۸۰۰ه په حدودو کی کندهار په دغه نامه د امیر تیمور په فتح کړو بلادو کی شامل دی، او دغه امیر سیفل کندهاری هم د هند په فتح کی له هغه امیره سره ملګری دی.

د هرات د تیموریانو په عصر کی کندهار د دوی د لوی مملکت یوطبیعی جز وؤ، د ۸۴۰ه په حدود کی میرزا شاهرخ او بیا وروسته سلطان حسین بای قرا دغه ښار یو د شهزاده ته وسپاره، او په مطلع عدین او روضة الصفا او حبیب السیر

او ددغی دوری په نورو تاریخونو کی د هرات د تیموریانو د لوی مملکت یو معتبر ښار دغه زوړ کندهار ګڼل کیدی.

د ۹۰۰ه په حدود کی د هرات د تیموریانو کورنی ضعیفه سوه د شمال له خوا شیبانی خان اوزبک او د غرب له خوا صفویانو پر دوی حمله وکړه، او په دغه وخت کی

د امیر ذوالنون ارغون زامن شاه بیګ او محمد مقیم چی د هرات د تیموری دربار امراء وو، له فراه څخه تر کندهاره او دره بولانه مسلطسول، مګر دوی له یوی خوا له شیبانی خان او د کابل له خوا څخه د بابر سره مقابل وو څو چی به آخر کی په ۹۱۳ه بابر کندهار هم و نیوی، او په سله دی دغه ښار کله د بابر او ددة د اولادو

په لاس کی وو، او کله به د صفویانو لښکر راتلل او دغه ښار به ئې نیوی. مګر حقیقی اختیار

او واک ئې د کلات د غلجو یا د ارغسان او هرات د ابدا لیو حکمرانانو په لاس کی ؤ.

د بابر کورنی حکمرانی له ۹۱۰ تر ۱۰۵۹ه پوری پر کندهار باندی په دغه ډول جاری وه، چی کله به د هند تیموریان غالب وو او کله به صفویان یوازی په دی

کلاکی ناست وو، او فقط لاری به ئې ساتلی، او د اطرافو پښتانه به د دوی له اثره آزاد وو، مګر په ۱۰۵۹ه کال چی دا ښار صفویانو و نیوی، نو د حاجی میرویس خان

هوتک تر نهضته ۱۱۱۹ه پوری ددی ښار ټینګه کلا د صفوی لښکر و پناه ګاه وه، او په همدغه کال میر ویس خان د پردو له تسلطه آزاده کړه.

په دغه وخت کی د زاړه

کندهار جغرافي وضع داسې وه، چې دغره په شرقي لمن کې پروت ؤ او دغه غرته ئې کوه لکه یا قیتول باله

پرغره لوړه د ارګ کلاوه چې د چهل زینې څخه تر لخشکه پورې دښار طول ؤ ابوالفضل وایې چې کندهار

دوې کلاوې درلودې، چې پسور ئې ۶۰ ګزه ؤ، او دورادور ئې خندق هم درلود دنارنج مرکزي قصر د شاه

او حاکم مسکن ؤ، میر معصوم وایې: چې دقیتول پرغره باندې پخوا یوه آتشکده آباده وه، اودښار

کلا دغه دروازې درلودې: د چهل زینې پر لوري شمالي خواته دګندیګان او شیخ-ولي دروازې وې. دجنوب

خواته دماشوردروازه، او شرقي خواته دروازۀ نو او

دروازۀ خضري وه، او د قیتول پرخوا د علي قاپي دروازه وه.

نواب صمصام الدوله په مآثرالامراء کې دښار پرشرقي خوا یوه بله دروازه.

د ویس قرن پنامه هم یادوي چې دغه مزار تراوسه هم د سلطان ویس پنامه د زاړه ښار په شرقي لمنو کې

موجود دی.

د پادشاه نامې مؤلف لیکي: چې د شاه جهان په وختو کې د کندهار کلا ترمیم سوه، او آته

لکه روپۍ پدې ترمیم خرڅې سوې.

په اکبرنامه کې دابوالفضل له بیانه داسې ښکاري، چې تردې ښار د مخه یو بل زوړ ښار دماشور دروازې وخواته ؤ، اود نارنج

قصر ئې برج خچه (آقچه) هم باله او دا ماڼۍ د ارګ په کلا کې واقع وه، او په ښار کې دننه د غره په لمن کې یوه بله کلا هم

وه، چې په هغه کې به ئې اسلحې ایښوولې او جبه خانه وه.

ترچهل زینې لاندې چې کومه آرامي او یوناني نوشته پر یوه پرښه باندې پیدا سوېده، دا نوشته د اشوکا په امر لیکلې

سوېده، چې د ۲۳۰ ق،م حدود دی، نو داسې ښکاري چې زوړ کندهار دغه دوه زره کاله پر دغه ځای آباد ؤ، او دا ښار په

۱۱۵۰ ه هغه وخت متروك او وران سو، چې تر یوه کال محاصرې او مقابلې وروسته نادرشاه افشار ونیوی، او وران ئې کې.

د زاړه کندهار له سقوط او ورانۍ سره د هوتکو سلطنت هم سقوط وکړه، څو چې لوی

احمدشاه بابا په ۱۱۶۰ ه کال بیا د افغان لوی سلطنت جوړ کې، او د کندهار دغه

نوی ښار ئې لبرڅه د زاړه ښار پر شرقي شمالي لوري ودان کې.

د ترکی ادبیاتو څخه:
ژباړونکی [لاروی]

## ځوان نسل

ای ځوانه نسله! سبا یعنې د ترقي او پرمختګ ورځ به ستا وی...

هو! وروسته له نن څخه به هر شی په تا تعلق ولري..

ای دځوانۍ مظهر؛ ای دفعالیت او فداکاریو نمونه

او ای د بشر دهیلو او آرزو-ګانو خندانه څهره! مګر داسې ندی؟

آیا ته دبشر دامید او تمنا ستر ګه نه ئې؟... نو ولې چوپ ناست یاته ئې؟

پدې نړۍ کې د هیواد په پهناوره خاوره کې دیوه ځلانده ستوری په څېر راوخېژه او پرپرده چې هغه مخوفه او تیاره ادوار او هغه دجهل او ناپوهی ورځې ستا د روڼې بڼې و مخې ته خاموشه سی.

باته به ۹ مخ کی

لیکوونکی م [عطائی]

# پر داستان لیکنه یوه لنډه څیړنه

## داستان څه شی دی؟

په لومړی سر کی داستان یو حکایت دی چی موږ ئې په

پښتو نکل بولو ، یا کیسه ورته وایو.

باور لرم زموږ هر هلك او هری نجلۍ به په کوچنی-

والی کی د انا یا مور څخه په التماس آمېزه ناز غوښتی

وی چی نکل راته وکه!

داستان دغه نکل دی خو نکل تر نکل پوری توپیر

لری. دانا نکل او د داستان تر منځ دیوې ماجرا د حکایت

په حیث څه توپیر نسته خو دلته توپیر موجود دی چی

د انا نکل سره لګیږی نه یعنی د انا په نکل کی منطقی انسجام موجود نه دی او په

داستان کی کیسه د عقل او منطق په حساب برابر د یو چا یوشی د حال بیان کوی.

یو محقق مقاله لیکوونکی چی اوس ئې زما نوم هېر دی یو وخت لیکلی وه چی:

«تاریخ په کیسه او کیسه په تاریخ کی ده».

داهم د کیسی لپاره او هم د تاریخ لپاره ښه سره ترکیب سوی تعریف دی.

پرونی تاریخونه ټوله یو نکل دی چی د مشهودو شیانو څخه پرته بغیری خو منطقی انسجام نه پکښی

شامل کیږی خو دانا تر نکل یو څه رامترقی دی.

### د دنیا په لاتینه وړمه ورځ کی

که موږ په تاریخی اصطلاح (قرون حاضره) نن (قرون جدیده) پرون (قرون وسطی)

وړمه ورځ وبولو نو تر میلاد وړاندی لنډی پېړی چی دیونان او روم دوره په ځان کښېباسی د لاتینه وړمی ورځی نوم به ورته مناسب وی.

د دنیا په دغه لاتینه وړمه ورځ کی د هغو خلکو لیکلی سوی کیسی زموږ د تاریخ ابتدائی خاکه ده.

پلوتارك چی د قدیمی نړۍ یو معروف مؤرخ تېر سوی دی ، کیسی ئې اکثره مبالغه آمېزه او په اغراق لړلی داستانونه دی.

داسی دهغی ورځی په نړۍ کی چی ډېره محدوده وه یو څه ګرز پدلی دی خو د هغو ځایو حکایات چی کوی نو د حقایقو ساتنه چندان نه کوی.

دده کمال دادی چی پو ښتنی طرح کوی خو پداسی الفاظو چی د هر انسان د ذهن څخه ترمخه

د سردار محمد [ولی] ژباړه

# آیا پوهیږی؟

انګور چی خورا خواږه او ګټوره مېوه ده څه وخت پیدا سو بده ؟

دانګورو تاك په طبیعت کی د خورا پخوانیو نباتاتو څخه شمېرل کیږی . خلك وایی چی: تقریباً د پرونز ددوري څخه دانګورو تاکان په نړۍ کی اینودل سوی دی. په زړه آسیا کی تقریباً ۴۰۰۰ کاله ق،م د مخه انسانانو دانګورو له تاکانو څخه مېوه خوړلی وه. د یونان څخه دانګورو د تاکانو روزنه وایطالیې ، سیسلی جزیرې او نوری بحیرې ته نقل سو بده . نن ورځ په نړۍ کی ۲۰۰۰ ډوله انګور پېژندل سوی دی..

موندلی وی. مثلاً وایی: آیا دا د سپوږمۍ پر مخ ولې پژه او ستر ګی معلومیږی.

یا د مصر پر مځکو دا سی عجایب او غرایب بیانوی چی منطق اود فکر د قناعت اصول ئی نه نسی منلای.

## د داستان تطور د اجتماعی شرایطو د بدلون په غبرګ کی

څرنګه چی کیسه په ادب کی، او ادب په هنر کی اوهنر په کلتور کی دیوې روبنائی مؤسسی ګراف جوړوی، نو کله چی دا ټوله روبنائی مؤسسه د خپلی زیربنا په حرکت او بدلون پخپل شکل اوماهیت کی تغییر منی، نو کیسې هم پدغه لارکی پړاو پر پړاو او نوی حالات لیدلی دی.

په کیسه کی هغه مهال چی د انسان سرګذشت بیانیږی نو د ټولنی په روابطو کی دده مناسبات تر تشریح لاندی راځی.

نو د دغو مناسباتو په پېژندنه کی تر هر څه وړاندی داستان زموږ سره مرسته کوی.

هغه داستانونه چی د مختلفو اجتماعی روابطو دحاکمیت په دورانونو کی لیکل سویدی، نو موږ ئی هغه وخت ښه سره څیړلای سو چی د ادبی مکتبو په هینداره کی ئی وګورو.

مثلاً په کلاسیك دوره کی دداستان قهرمان پوره ماجراجویه دی او ددغه وخت داستانونه ټوله دممتازو طبقاتو پر عشق او ماجراجویه مینه څرخوند وهی.

ددې شیوې په پالنه داستان لیکنی هغه وخت ډیر رواج پیداکړ چی دنړیوالیرو او نژدونه کاشفین ور روان شول.

پدې وختو کی نو هغسی وزرداره دراغونه ویل سوی دی چی نه یوازی دداستان کرکټرونه بلکی د داستان فضا او محیط هم کاملاً وحشی اونا پېژندونکی دی.

پدې پسی چی دعصرمادی روابط پر بل مخ واوښتل او تضادونه په وفرت منځ ته راغلل نوپه ادبیاتو کی ئی رومانتیك ادبی مکتب ته حاکمیت وباخښه چی کیسی

یا د داستان رول د عام محرومیت په تمثیل کی څرګندوی، د آزاد تخیل او آزاد عمل ساحه چی څو نه پراخېده نو دعمل اوعکس-العمل جریاناتو هم شدت پیداکاوه څو روما نتسیزم پرضدریالیسم منځ ته راغی

او پدې مکتب کی نو داستان لیکنه دلو یواځ درنو اجتماعی مباحثو دتشریح یوه داسی هینداره شوه چی په هغه کی دهری ټولنی اود هغی دخلکو دروابطو اومناسباتو ګړه وړه بیله کوم غل وغشه ښکښی ښکاری. که موږ نن د عصر لوی ولسی تاریخ پخپل ټول کمۍ کیف وایو نو موږ ته داستانونه ښه بصیرت راکولای شی.

پدې مکتب کی د داستان قهرمان او کرکټرونه د عوامو څخه انتخابیږی ځکه علم وایی چی: تاریخ دوی جوړوی، د داستان طرح، فضا، دماجر او تخلیق اود هغو برخورد ګرده عوامی رنګ لری نو ځکه ادبیات په خاص ډول داستان د عوامو لپاره نه یواځی د تفریح یوه ښه وسیله ده بلکی دوی خپل ځانونه او موقف پر دغه محل ښه پېژندلای شی اودغه بصیرت دوی ته هغه لاری اوچاری ورښیی چی دژوند عالی او واقعی کمالات په هغه کی مضمردی.

مترجم (م-ع)

پر ادبیاتو یوه کره کتنه

# د ادبی نثر لنډ ګراف

نثر-

منثور ډراما

یو لنډ لیکل سوی تصنیف ESSAY

منثور حکایت PROSE FICTION ←

- تمثیلی حکایت PROSE ALLEGORY
- منثور رومان PROSE ROMANCE
- د ماجراجویانو کیسې- TALE OF ADVAN-TUR
- ناول NOVEL
- لنډ ناول NOVELETTE
- لنډه کیسه SHART STORY

بیوګرافی او اټوبیوګرافی

لیکونه-ډایری-ژورنالېزم

د نثر نور اقسام ←

- سیاحت نامه TRAVEL
- تاریخی نثر HISTORICLE PROSE
- علمی نثر SCINTIFIC PROSE
- ادبی انتقاد (پر کتابونو تقریظ او کره کتنه)

---

پورتنی ګراف د (A STUDY OF THE TYPES OF LITERATURE) څخه اقتباس او ترجمه سوی دی.

عبدالصمد [فدا] ژباړه

# د افغانستان سیندونه

دافغانستان طبیعي ساختمان داسې دی، چې مرکزي برخې ئې بې شمېره غرو نیولې دی. هر وخت چې د هغه و طبیعي ساختمان ته نظر واچوو معلومېږي چې مرکزي او شمال شرقي برخه ئې ډېره لوړه ده او ورو ورو ترهغه هرڅومره چې شمالي، لوېدیځ او د جنوب وخواته راځو د لوړ والي څخه ئې کمېږي.

شمال شرقي او مرکزي غرونه ئې د پامیر څخه را جلا سویدي او هیواد ئې سرتر پایه نیولی دی، دغه غرونه چې سرونه ئې واوري او یخې پټ کړیدي د ډېرو سندونو سرچینې دي چې پر شمال لوېدیځ، جنوب او لمرختیځو خواوو بهیږي. څرنګه چې افغانستان د براعظم په ما بین کې پروت دی او د بحر څخه لیري دی، دغه تو له سیندونه په استثنا د کابل سیند او د هغه معاونین او ځینې جنوبي سیندونه د هیواد له داخل څخه یا د ګاونډي هیوادو څخه نه وزي، دافغانستان سیندونه په بنه توګه د خړوبولو په درد خوري او د اکثرو څخه ئې شېلې او ویالې جلا کړیدي. د افغانستان سیندونه که څه هم د پسرلي په باراني موسم کې ډک وي، اما د کال په ډېرو برخو کې عبور و مرور د ډېرو سیندو څخه چندانې مشکل نه دی.

اکثره سیندونه د حمل و نقل لپاره مساعد ندي لېکن د برېښنا داستحصال لپاره ډېر مفید دی.

په لاندني ډول د هیواد د مهمو سیندونو په پوره تفصیل پیل کوو:

د کابل سیند

دغه سیند د پغمان دغرو څخه په ۱۴۰۷۹ فټه ارتفاع د اوني د کوتل په شا و خوا کې چې ۲۸ میله د کابل و لوېدیځ خواته

## ځوان نسل

د ۵ مخ باقي

ای ځوانانو! آیا پوهېږئ دا څوك دی؟ دا طنازه نجلۍ چې پخپلو تورو سترګو ستاسو وخواته ګوري؟

دا ګران هیواد ستاسو د پلرو او نیکه ګانو زېږېدنی او پالنې ځای دی چې د هغه ډك له ثروته او سر تر پایه نعمته خاوره د بېګناوو د عناد مایه او د بدبینانو د بخل او حسد واسطه ده چې رب (ج) هر کله خپل عنایت او الطاف ورلره بخښلي دی.

خاورې مې پر خوله... که څوك د بې عنایتۍ او کم لطفۍ ورباندې نظاره وکړي. آیا تاسو ځوان نسل به تحمل وکړی رښتیا چې، نه...

نو، ای ځوانانو ولې چوپ ناست یاست او د همت ملا مو نه تړئ او خپله وظیفه فعالیت او فداکاري نه ګرځوئ...

هی؟ جنګ شئ؛ د خپل هیواد د پت د ساتنې لپاره او د هغه د حیثیت د ژغورلو د پارة د همت بخښنه وکړئ او وپوهېږئ چې خدای (ج) له تاسو سره او ستا د بې آلایشو احساساتو او بې نظیرو فداکاریو ناظر به وي.

راځي ، د شروع په وخت کي د ختيځ له خوا څخه راغلي دي او د جاغوري، درويش، جلريز او مامه کي مځکي

خړوبوي ، ولي سمدستي د جنوب لو پديځ خوا ته ئيسي او پدې ډول د قوروغ د غره په شاوخوا کي ګرځي او د

چهاردي دشتي او سرسبزي ناوې څخه تېرېږي پدې ځاى کي د پغمان سيند په هغه کي يو ځاى او ګډېږي

پسله تېر پدو څخه تر ګذرګاه د کابل ښار پر دوو حصو ويشي .

په بګرامي کي چي څو ميله د ښار وختيځ لور ته پروت دى د لوګر سيند چي د لوګر د ناوې مځکي خړوبوي

هغه سره يو ځاى کيږي د لوګر سيند چي ښا خونه ئې د خروار او وردګ په شاوخوا کي د برکي برك سره يو ځاى

کيږي د جنوب له خوا څخه د کابل په سيند پورى تړل کيږي .

د کابل سيند وروسته بيا لوى لوى ناوې چي د کابل وختيځ خوا ته دى او به کوى او بيا له تنګي غارو څخه

تېرېږي، څو ميله کښته شپلى شپلى کيږي چي مشهور.

ئې د ماهيپر شپله ده، وروسته بيا د سروبي ميدانو ته ورځي چي پدغه ځاى کي د دغه سيند بل معاون د پنجشير رود دى چي د هغه او به ورتوئيږي .

د پنجشير سيند :

د پنجشير او غوربند د ګډو سيندونو څخه منځ ته راغلى دى وروسته له هغه چي د کوهستان د شمالي برخي مځکو څخه يعني

«جنګدلك» راطي کړي د ننګرهار و ميدانو ته داخليږي نو پدغه ځاى کي د عليشنګ او النګار رودونه چي د لغمان (ميترلام

د ناوې څخه راځي د شمال له خوا څخه پدغه سيند پوري تړل کيږي او د سرخرود سيند له جنوبي طرفه څخه د هغه سره يو ځاى

کيږي چي د هغه په نږدې برخه کي د «کنړ» او «کامې» سيندونه په ګډيږي.

د کنړ سيند د شمالي لور څخه د «واخان» له غرو نه د «بروغيل» د کوتل په شاوخوا کي سرچينه اخلي په «جغسراى».

کي د «پنج سيند» په هغه ګډيږي وروسته له هغه د کابل رود د ختيځ برخي را په منځ کي ئيسي په غير منظم ډول د کابل د سړك غاړى ئيسي او

بيا «پېښور» ته ځي. له «ډکي» څخه تر تېرېدو وروسته ۴۲ ميله چي د جلال آباد څخه ليري ده او د

«مومندو» په غرني سيمه کي (مچني» ته نږدې د پېښور و ښار ته داخليږي او پدغه سيمه کي «باجوړ» او

«سوات» په هغه پوري تړل کيږي، پدغه وخت کي يوه لويه رودخانه کېدلاى شي

چي و «اټك» ته نږدې د «اندوس» و رود ته توئيږي.

د کابل د رود حرکت او بهېدل په عمومي توګه تېز او چابك دى دوړلو او نقل کولو د پاره د هغه په اکثرو

برخو کي کار اخيستل کيږي د دغه سيند د شروع څخه او به لږ دي. د دوبي په وخت کي کله کله ډېر ږيري چي د هغه

څخه د کرني او کښت لپاره استفاده کيږي او پخواني نومونه د دغه «کوبونو» (کو ين) «کوفس او ر کو» دى

د دغه سيند اوږدوالى ۳۱۶ ميله دى.

## هلمند

د هلمند رود او سيند د افغانستان د ستر و سيندونو څخه دى چي د دغه سيند

اوږدوالى ۶۲۵ ميله دى د دغه سيند جريان د هيواد د جنوب لو پديځ لور ته دى هلمند ته «هيرمند» هم

وایي ولې د دغه سیند پخوانی نوم «آن ایتي ماندر، ایتي‌ماندروس، واري ماتس او هیتومت» دی. د دغه سیند سرچشمه د درهٔ اونۍ د ځنګۍ ناوې د شمال څخه د پغمان د لوېدیځې سلسلې څخه دی.

د جریان د لومړي سر له شروع څخه نژدې ولوېدیځ لور ته د هزاره جاتو له میانځ څخه تېرېږي او وروسته د دورانو وحاصلخېزې سیمې ته داخلېږي. دغه سیند بیا ګرشك ته لا نه رسېږي چې یو شمېر نور کومکي رودونه لکه د کجر، موسی کلا، د غورك او نور رودونه چې د ګرشك په کښته کې د پخواني بست خرابیو د ارغنداب او ترنك رودخانو ته چې د ټولو سیندونو لکه د ترنك ارغنداب او ارغسان څخه تشکیل شوېدی ور توئېږي. له دغه ځای څخه نو وروسته د هلمند سیند ته لوېږي وختي چې نو د ګرمسېر د سیمې څخه تېر شو نو د لوېدیځ خوا ځانته اختیاروي د «چاربرجك» له شاوخوا څخه و شمال لورته جاري کېږي.

بالاخره د هلمند و دریاچې ته ورتوئېږي. د سیستان نقطه او سیمه له دغه رود څخه اوبه کېږي د دغه سیند غاړې بېله د ریګي سیمو څخه ټوله حاصلورکوونکې او د کرهڼې وړ دی.

د هلمند سیند ډېر لوی دی او په ګرمۍ کې د اوبو لړونکي او ډېر ژور دی او د طغیان په وخت کې د دغه سیند جریان تند او چټك کېږي او اوبه ئې ډېر زیاتې شي. د دغه سیند لوی کومکي او مرستیال د ارغنداب سیند دی، چې د ارغنداب ترنك، او ارغسان له رودونو څخه په وجود راغلی دی.

د ارغنداب سیند د هزاره وو د غرونو او د «باري حق» د کوتل وجنوب ته د هلمند سیند سرچشمه ځینې اخلي.

دغه رودخانه و جنوب لوېدیځ لورته روانه ده وروسته د کلات د غلزائي څخه و هوار دښت ته داخلېږي او د کندهار حاصلخېزه سیمه خړوبه کوي، او په ژمي کې دغه سیندونه ولې ولې کېږي او د واورې د ویلې کېدو په وخت کې ئې او به زیاتېږي، او حرکت ئې تند او تېز کېږي. د دغه سیند بروالی له ۱۵۰ مترو څخه زیات دی.

د ترنك رود چې د مقر د شاوخوا غرونو څخه سرچینه اخیستې ده د جنوب لوېدیځ لور ته جریان لري له شاه‌جوی او کلات څخه تېرېږي.

## د ارغسان سیند:

دغه رود د څو زاهدو ښاخو لکه د «کند» او کندنی سیندونو څخه مرکب دی د کندهار د ښار په جنوبي ناوه کې و هغه ته توئېږي هغه سیند چې د ترنك او ارغسان د رودونو سره له یو ځای کېدو څخه په وجود راځي او بیا کښته د ارغنداب په سیند ورګډېږي.

د کشك نخود او میوند رودونه هم د کشك نخود په سر کې د ارغنداب و رود ته ورشېوه کېږي، وروسته نو بیا یوه ستره رودخانه ځینې جوړه، چې دغه رودخانه تر ګرشك کښته د هلمند و سیند ته لوېږي چې د هلمند د رود د لوی والي موجب ګرځي.

## د غزني رود:

دغه وړوکې رودخانه دوه ښاخونه لري چې یو ئې له غزنی څخه تېر سوی د «شلګر» په حدود کې له هغه ښاخ سره چې ګردېز څخه راځي ورسره یو ځای کېږي

باته به ۱۲ مخ کې

پر ادبیاتو یوه کره کتنه
د ښاغلي [ع] لیکنه

# صنعتي انقلاب څرنګه شروع سو

تر اتلسمې پېړۍ پخوا صنعت موجود ؤ، خو دغه شکل ابتدائي ؤ او صرف د هغه قوت په مقدار تولید ورځنی حاصلېدی چې د انسان په مټ کې به پروت ؤ.

په اتلسمه پېړۍ کې تر علمي اصولو لاندې په صنعت کې یو نوی خوځونکی بدلون راغی او دا بدلون عبارت له هغه ماشین څخه ؤ چې په بخار ئې حرکت کاوه او هر کار ئې د یوه آن له مخې د زرګونو انسانانو د قوت په مقدار سرته رساوه.

د بخار تر کشف وړاندې خلکو د ماشین په څرخولو کې د اوبو له فشار څخه کار اخیستی او مخکې تر دې چې د ماشین پرې بخار

و څرخوي په انګلستان کې د اوړلو ماشینونه په اوبو څرخېدل کوم چاچې د اوړلو ماشینونه جوړ کړل هغه لومړی سړی

«هارګریوز» نومېدی، د ده د تار اوړنی ماشین ته «ارکرایت» نومي انګلیس د اوبو په فشار حرکت ورکړ او «کرومپتن» نومي

د پورتني دوو کسو مشینونه تکمیل کړل، خو کوم سړی چې داوړنی ماشین په اساسي ډول په کار واچاوه هغه یو روحاني ملا ؤ، چې «کارټرایټ» نومېدی او دا مهال هم ۱۷۳۳ کال ؤ. (۱)

په عمومي صورت چې د صنعتي انقلاب اساس کوم شي بلل کېږي هغه د بخار له قوې څخه د استفادې فکر دی.

«جیمز واټ» یو سکاټلېنډی څېړونکی ؤ چې د (ګلاسکو) په ښار کې اوسېدی، ده د بخار په طبیعت کې زیات

مطالعات وکړل، د «برودت» په واسطه د بخار د تکاثف کیفیت او د هغه د انبساط کیفیت ئې کشف کړ او پوره

لس کاله ئې پدې باره کې مطالعات وکړل تر څو ئې د بخار د ماشین مختلف اجزا سره واچول او په عالم کې ئې یو نوی ښور راوست.

په ابتدا کې د بخار له ماشین څخه یوازې د اوړلو

(نساجي) اود کانو د غارو کیندلو په برخه کې کار اخیستل کېدی خو وروسته

د لویو اورګاډو او بېړیو په چلولو کې هم استفاده ځینې وسوه.

جیمز واټ په لومړي سر کې د (نیوکامن) مشین چې د کانو په کیندلو کې کار ځینې اخیستل کېدی او د

اوبو په بخار چلېدی ولید اود هغه له مخې ئې خپل هغه د بخار ماشین درست کړ چې د نورو ماشینانو مور بلل کېږي.

جیمز واټ د خپل عمر په وروستیو ورځو کې د معروف شخصیت خاوند سو او د فرانسې له علماؤ سره مخصوصا

د لوی کیمیاپوهاند «لاوازیر» سره ئې زیاته اشنائي

درلوده، او اکثر به ئې د خپلو اکتشافاتو په باره کې

له هغه سره مرستې کولې. کله چې مړ سو د (ویست-مینستر) په کلیسا کې ئې مجسمه و درول سوه او دا

---

(۱) کلیات تاریخ تمدن جدید (۸۰ مخ)

تورى پرليكل سويدى:
« ددغى مجسمى له نصب كولو څخه‌دا نه‌دى منظور، چى دده نوم پـاته‌سى ځكه تر هره وخته

پورى چى هنر د سولى په غېږ كى پاته او رواج لرى، دا نوم به باقى وى، بلكى دا ئى منظوردادى چى بشرى نوع پوه سى چى بايد د

هغه‌سړى لپاره چى په خورانه ډول ئى‌دوى ته خدمت كړيدى حق پېژندونكى وى. (۱)

دا اوږلو تر ماشين تقريباً ۶۰ كـاله وروسته پـه ۱۷۹۳كى يو امريكائى پوهاند «ويټ نى» د حلاجى مـاشين اختراع كړ او

پدې ډول د نساجى په كار كى يو نوى ډول چټكى راغله .

په اتلسمه پېړۍ كى سربېره پرنورو ترقيو په ساينس كى‌هم لوى گامونه واخيستل‌سوه چى هغه هريو دصنعت دچټك‌خېرېدو په‌لار كى زياته مرسته‌وكړه.

دا مهـال په فـزيك كى د (ميـزان‌الحـراره) اختـراع د يادونى وړ ده، چى په ترتيب سره «فارنهيت» انگليس، «دئومور»

فرانسوى، او«سلسيوس»سويډنى منځ‌ته راوړه او وروستى‌سړى د سانتيگراد تقسيمات معين كړل.

(۱) دتمدن قهرمانان دژورف كانلرا . بيم‌جاف‌تا ليف‌اود [ثابت] ترجمه ۲۴۱مخ .

په كيميا كى د«لاوازيه» فرانسوى‌خدمت، د ستاينى او يادونى‌وړ دى . نوموړى هغه‌اساسات‌اوقوانين كشف

كړل‌چى عصرى كيميا پوهنه پرهغه ولاړه ده.

«لاوازيه»دهواد تركيب اجراماتو اواوبو په تركيب كى مطالعات وكړل او د معروف كيميـا پوهـاند

«پريستلى» پـر كشف سوى «گيس» د (اكسيجن) نـوم كېښېنود، ده دخپلو ژورو مطالعاتو له‌لارى د(اكسيجن)

خاصيت كاملاً وښوده او بيائى دا يونـانى نوم پر كېښېښود چـى معنى ئـى (تېزاب‌جوړونكى ) دى او

دا معروفه قضيه ئى دخپلو تحقيقاتو اساس وگرزوله (كه‌څه‌هم كېداى سى چى مادې ته‌صورتاً تغير وركولى

سى ، ولى وزن ته ئى تغير نه‌سى وركول كېداى ) په دغه‌زمانه‌كى علاوه‌پر كيميا په‌رياضى او طبيعى علومو

كى هم نـوى كشفيات په عمل‌راغله چى‌دهغو هريو دصنعت په‌پرمخ بيولو او تكامل كى اثر درلود.



## دافغانستان...

د ۱۱ مخ پاته

له‌دې نه پس‌نو دغزنى سيند ځينى تشكيل او جوړيږى بيا نو دغه رودخانى جنوب او لوېديځى خـواوى طى

كوى‌دغزنى په «آب‌استاده» كى توئيږى . ددغـه رود اوږدوالى تقريباً دوه‌سوه كېلومتره دى.

### دپالتو رود:

دغه‌رود كوچنى دى‌چى دختيځى پلوه څخه‌دزرغون ښارنه‌تېريږى له‌هغه وروسته داهم‌لكه‌د غزنى‌رود خپله دغـزنى په (آب استاده) كښېږى. دپالتو‌سيند اوږد-والى تقريبـاً سل كېلومتر دى .

### دگومل رود:

د اركون لـه شاوخوا څخه د گومل سيند راغلى او جنوبى پلوته په‌حركت كى دى اود سرحد په‌كربنه كى‌د«كندر» رود ورته را توئيږى پدغه وخت كى نو دختيځ‌پلو غوره‌او اختيا-رى نو بيا د (سيند) رود ته ور توئيږى .

ددغـه رود اوږد والى ۳۵۰ كېلومتره‌دى.

(نور بيا)




ښاغلی حبیبي

# پسرلی شو

بیا له ښه پورته کیږی ښه ږغونه
ته وا راغله د بلبلو بهیرونه

ښې زرغون شو غر، زرغون له پسرلی شو
ونو ځان کړ آراسته په پسولونه
دا د غرونو په لمنو کی لاله دی؟
که پراته دی شهیدان سره کفنونه
دا نځا د ښځلو نجونو پر مرغه ده؟
که کلی پر مرغزار وهی ټوپونه؟
خو چی ستر ګی کارکوی زرغونه ښکاری
غر، ښدیا، پټی، غونډی، او دامانونه
سپین غر ټوله په غټولو سور زرغون سو
هندوکش باندی نیسان کړی نثارونه
په بامی بلخ کی بامی غوړیږی خاندی
په باختر کی د سروګلو دی سیلونه
نو بهار دی د پسرلی جنډی لوړیږی
خلک ځی ام البلاد کی کړی جشنونه
پر تخار د پسرلی وږمی چلیږی
مړه ګلان بیا برخه مومی له ژوندونه

پر کابل او ننګرهار چې بهار یو کا
ته وا راغی مسیحا یو کړی دمونه
ارغنداو باندی نثار د شګوفو کا
په نڅا نڅا هلمند کړی غور ځنګونه

خړ ترنګ چې بهېده کا ته وا لولی
د متی نیکه د مینی دېوانو نه
هریرود پر غاړه نن د ګل نڅا ده
که راغلی پری د غور دی زلمی جونه

د وینټیا ږغونه بیا پاڅی له بسته
له غزنی ار وېدل کیږی ښه ږغونه
د پسرلی مناظر هسی دلربا دی
چې په خوندني نه مړیږی سترګی زړونه

پسرلی د مینی مینه ډېر وینه
هو و بڼ ته مایل کاندی بلبلونه
څو پسرلی په هر نوروز راځی هیواد له
څوچې لوړ وی پرنړی باندی دا غرونه

څو چې اور د لاله بل د غرو په کور وی
څو چې بل وی د سپوږمۍ لمر مشالونه
څوچې ستوری پر آسمان بریښی په شپو کی
څوچې شپې ورځې راځی پر هیوادونه

تل تر تل اوسی وطنه ودان اوسی
ټول اوقات دی پسرلی وه په ګلونه
د قدرت لاس دی تل ستا په ښکلېدو وی
تل ودان اوسه په سعی له پښتونه

---

څلوریځه

طبیعت جوړ کړی دا رنګه سنګار دی،
باغ او بڼ چې نن لیده سی ښه ګلزار دی
دښت ؤ غرونه ګوره بل رنګه ښکاریږی
پاس وګوره د اوریځو غړمبهار دی

[فدا]

بناغلی [بېنوا]

# هلمند بيا په خپو راغی

بيا ئي وشکل له کوم خمه يو ك جامونه
دا د هسك پېغله چي ناځي له جنونه
له مستی نه ئي ساغر له لاسه پرېووت
په څو ځاځکو ئي کړه مست سپهر ډاکونه

د زلما په ميو مستي چټي ګوره!
چي خپاره ئي لور په لورکړه اربلونه
هم محفلا کا هم نڅا کا هم شنا کا
چي تر څنګك کړي د رو پو سپين امېلونه

د کږديو مخ غاړولو سور بخمل کا
چي پري وکا زلمی نجو نی اتڼونه
له سپېرو خاورو بامی ګلونه پاځي
چي پري تېر شي د نجنکيو پلوونه

کتهار د زرګومړه زړونه ژوندی کړه
چي نغمو نغموکی ستا ئی شينکي غرونه
هلمند بيا په څپو راغی غاړي غاړي
چي ورغاړه غړه شوه څپان نيزونه

د پسرلی ناوی ودیری ورائي پنهه
مخ کاته اخلي دغرو سورکی لالونه
ننداروته ئي وتلی لوی واړه دی
خو چا مسته خندا راوړه چا غمونه

د هغو به څه پسرلی وی چي ولاړ وی
په کږو غـاړو د بـل په درشلونه
ژوند ئي وی دبل دپاره مړينی هم‌لا
جاروی دبل ترخوی تل خپل خویونه

آه څښتنه چي دی ژوند هرشی ته ورکا
په زرغادی د لما نځل سپېره رغونه

۱۷ مخ دی وکتل شی

ښاغلی [نوری]

# تورو غرو کی سره ګلونه

پسرلی پر مځکو ولـوئل ګلونه
په ګلونو ئې ښایسته کړه سمې غرونه

تورو غرو کی سره ګلونه هسې ښکاری
لکه ښکاری تور اربل کی سره خالونه

دیتیم په دود چې لځ لپړ ولاړ وو
بیله پاڼو د سپېرو ونـو ښاخونه

زرغونه نمری پسرلی ورلره راوړه
په شنو پاڼو سره ئې ورکړه سینګارونه

ټولو ونو ته ئې نوی ژوندون ورکړ
چې په ژمی ئې هیله نه وه له ژوندونه

یتیم رخه اوس له دوی سره هم کاندی
زموږ به څوك راپټوی سر تور سرونه

---

د ۱٦ مخ پاته

چې کریابی میری ستا له پیرزوینې
شنې تالی سوی شنې لمبی شنې دښتونه

موږ له هسې ژونده وژغوره خاونده
خپلوا کی مو ټل نصیب کړه څوچې یونه

چې موژوند د پسرلی په څېر سمسور وی
خوند به اخلو له دې ښکلی نندارتونه



دهیواد دمشاهیرو په لړ کې:

# زرغون خان جنت مکان) په قوم نورزی ؤ

روایت کا : دوست محمد کاکړ پخپل کتاب (غرغښت نامه) کې کښلی دی چې زرغون خان د نوزاد نورزی ؤ او په (۸۹۱هـ) کال کې مبارك و هرات ته ولاړ، او له هغه ځایه په

عراق او خراسان سورو کا اوداوزبکو په جنګو کې زرغون ښکاره کړه ښه مړانه او غیرت، چې شیبانی خان سیستان ته ورسېد نو زرغون خان دده سره جنګونه وکړه چې د ا'.زبکو لښکر ؤ پر و مړل.

دوست محمد کاکړ هسې نقل کا: چې په سنه (۹۱۳هـ) زه ولاړم هرات په کجران کې می دملا ایوب تیمنی څخه د زرغون خان دغزلو او شعرو دیوان ولید چې اوراق ئې وه په شمېر درې سوه.

او هم د دوست محمد کاکړ روایت دی: چې زرغون ؤ پر ضعیف سو او په سنه (۹۳۱هـ) په دېراوت کې وفات سو.

دوست محمد کاکړ پخپله غرغښت نامه کې دالاندی دوه ایځ چې مثنوی د ساقی نامې دی دده داشعارو له دېوانه رانقل کوی:

﴿مثنوی ساقی نامه﴾

ساقی پاڅه پیاله راکړه
مرور یار می پخلا کړه
اوبه تولی په لنبو کړه
اور می مړ په دې اوبو کړه

پسرلی سو غنچه ګل کا
زلفی تاری د سنبل کا
بلبلان شور و فغان کا
ګرځېدن په ګلستان کا

زاهد وزی صومعې څخه
شراب پیری میخانی څخه

هرسړی په میو مست دی
دی بهار کې ګلپرست دی
په راغو کې سرې لنبې دی
د غټولو ننداری دی

جهان ټوله سور او زرغون شو
وچ راغه ښکلی ګلګون شو

سړی ټول شور و شغب کا
یارانی کاندی طلب کا
بهار وقت د یارانی دی
ښه موسم د پیمانی دی
نو ساقی پاڅه بهار دی
نن ژوندون سبا رفتار دی

دنیا پاته مو نه به ځونه
تورو خاورو کی به یونه
پیمانه ډکه له می کړه
بزم تود په پیا پی کړه

چې یو دم سمه آزاد
نا ښاد زړه می سینه ښاد
ساقی پاڅه وخت دګل دی
په جوشش کی خم دمل دی

وخت د میو د ویشو دی
د پیا لـو د ډ کېدو دی
هغه څوک اوس د پېغور دی،
چې جام تش و نسکور دی

مستان گرزی په باغوکی
مستی کاندی په راغوکی
لاس په لاس دی یارانی کا
یو په بل نازونخرې کا

مجنون وصل له لیلا دی
د جمال پـه تماشا دی
نه غم جن سته نه بېلتون سته
نه مهجور نه څگر خون سته

تر تـا و گرزمـه راسه
ساقی یو گړی پخلا سه
ما ته جام دربل ولور را
چی یو تش سی ډک ئې نور را

اور می بل دزړه په کور کړه
له هر چاهر څه ئې تور کړه
چی بل څه نه وی الف وی
ټو لـه مهرو محبت وی

ټول اخلاص وی او صفا وی
تیاره ورکه سی رڼا وی
له زړه کم غش او دغل سی
جهان ټول له گل او مل سی

ساقی ستا مهر مطلوب دی
نو بهار څکه مرغوب دی
که ستا لور، پېرزو نه وی
نو بهار به په څه ښه وی؟

خو ند به نکا رنگ دگلو
بی مستیو بی لـه ملو
نه به بزم په شور تود سی
نه نغمی نه به سرود سی

جام به تش د آرزو سی
ورك به مهر او پېرزو سی
نو ساقی پا څه بهار دی
بزم تا ته امید وار دی

یاران نا ست ستر گی څلوردی
ستا د جام په امید نور دی
ته هم راسه عنایت کړه
بـزم تود د محبت کړه

له سرو ملو څخه ډك جام کړه
د یارانو ئې انعام کړه
چی سوړ بزم په می تود سی
در ندا نو غو ږو سرود سی

د جهان ویرو وغم هېر کا
یـو دم ښه عشرت تېر کا
چی په مخ کی مو بېلتون دی
له جهانه سبا یـون دی

(بقیه غرا نه)

---

# چینایانو ویلی دی

کېدای شی چی سړی چـای او سړه وریجو تـه تحمل وشی لېکن سړه کتنه او سړه خـبره د تحمل وړ نه دی.

وختی چی غضب خبری کوی، عقل خپله څېره پټوی
د چاچی وجدان پاك وی تل خوشحاله وی

ښاغلی [صدیقی]

# د بمبئی د تیاتر یو لنډ تاریخ

په هغه وختو کی چی د هند او آسیا په ټولو سیمو کی هیڅ تیاتر نه ؤ موجود ، دا تیاتر منځ ته راغلی دی .

ددې تیاتر په تاریخی موقف باندی ډېر آثار لیکل سوی دی خصوصاً په هندی ژبو کی چی موږ دهغو په استناد دهغه یو لنډ تاریخ وړاندی کوو .

---

هغه وخت چی د انګلستان پاچا « دوهم چارلس » د پرتګال د پاچا « شپږم الفانسو » د لور « کهترائن- آف برنګیزا » سره واده وکړ ، نو

د پرتګال د پاچا لور ته بمبئی په ولور کی ورسېد او په ۱۶۶۵ م کال کی پردې سیمه باندی د انګریزانو پوره سلطه قایمه سوه په

۱۶۶۸م کی دوهم چارلس د بمبئی سیمه اسټیټ انډیا کمپنی ته په لس زره بوڼه کالنی کرایه ورکړه .

پخوا له دې نه دغه کمپنی په «صورت» کی په تجارتی او سیاسی فعالیتونو بوخت وه .

«صورت» د هند په ټولو سیمو کی د مغولیه باچایانو یو مهم عسکری مرکز ګڼل کېده .

په کوم وخت کی چی دغه کمپنی د صورت نه بمبئی ته لاړه



[پرتوبراج] د دغه تیاتر یو پخوانی لوبغاړی د پښتون په ډراما کی

نو هلته ئې یو نوی اجتماعی محیط تشکیل کړ .

انګریزانو د خپلی تفریح دپاره او یا پدې لحاظ چی ډراماتیک استعدادونه د هغوی د

سیاسی حلقو د تاثیر لاندی وروزل شی دغه تیاتر مینځ

ته راوړ .

د بمبئی «ګزټ» مجله د ۱۸۴۲م د جنوری په شلورمه تاریخی ګڼه کی

لیکی : په کوم وخت کی چی د بمبئی تیاتر د تعمیر دپاره

یوه جرګه د [هنری فاکټ] په مشری جوړه سوه نو

هنري فاکټ ددې تیاتر د پرانستلو په ترڅ کې وویل:
دا تیاتر په ۱۷۵۰ کې د خلکو په بسپنو جوړ سوی دی . د ۵۰ کلـدارو ځخه نیولې تر شپږسوه کلدارو پورې خلکو ددې تیاتر د جـوړولو دپـاره بسپنې ورکړیدې . حکومت هـم بې د کوم شرط او قید ځخه د بمبئې د «کوزه خانې» ځمکه ددې تیاتر دپاره ورکړه .



ملکه [کهتراین آف برنګیزا] چې د بمبئې ښار ورته په ولـور کې رسېدلې وو

تر ۵۰ کاله پورې دا تیاتـر هلته پخپل ځـای پاتې ؤ، دومره عایدات ئې نه درلودل چې د هغه د لګښت پیمانه ور باندې ډکه سوې وای، دپورو د فشار ځخه هیځکله نه خلاصېده، کوم وخت چې د تیاتر د ترمیم موضوع مېنځ ته راغله نو پـدې وخت کـې ۹ زره کلداري پوروړی ؤ، بیا د خلکو دبسپنو له برکته له پوره خلاص سو او سربېره په هغه بانـدې پنځه زره کلداري د تیاتر د ترمیم دپاره پاتې سوې کله چې په ۱۸۱۸م کال کې دا تیاتر بیا افتتاح شو، نو پدې وخت کې ۱۷ زره کلداري پوروړی وو .

د ځینو خلکو په نظریه ددې تیاتر نظام، چندانې ښه نهٔ نـو ځکه د هغه اقتصادی تعادل نه برابرېده.

## د بمبئې نوی تیاتر

دخلکو دغوښتنو په اثر په ۱۸۳٦ کـال کې د بمبئې حکومت ۳۴٦۲ کـلداري د نوی تیاتر د تعمیر دپاره منظور کړې.

«جګنـات شینګر سیټ» خپله شخصی ځمکه ددې نوی تیاتر دپاره وقف کړه دده په پاملرنه په لږ موده کې داتعمیر بشپړ سو اوددا کتر «بهـاوداجی» ځخه ئـې وغوښتل چې ددې تیاتر دپاره ډرامې ولیکې، د هغه لومړی ډرامه «راجه ګوپی چند جلند» وه چې دتیاتر په ستیج کې ولوبول شوه.

دهند دپاچایانو او «راجه-ګانو نه هریو تن» دفن او ادب او موسیقی دپاره ډېر لوی، لوی خدمتونه سرته رسولی دی.



[کی کی دون] یو پخوانی هندی لوبغاړی

واجدعلی شاه اختر د«اودی-پاچا» هم پخپل وار د ادبی او فنی نړۍ دپـاره د قـدر وړ کارنامی پـای ته رسولی دی

سربېره پردې چې دده په وخت کې د ښکلو پېغلو او ځلمیانو دموسیقی د زده کړې دپاره په «اوده» کې یو اصولی ښوونځی تاسیس سوی ؤ دده د «حضور-

۲۲ مخ دی و کتل شی

# شګوفه

ښکلی او ګلالی شګوفې!
تا ته څومره ښکلا درکړه سو پده او ستا ښایسته رنګونه څومره زړه وړونکې دي.

ته د بادام په لښتو، د زردالو په ښاخونو د شفتالو په څانګو، د مڼو او ناکو په شنو پاڼو کې بل بل راز ایسې او ځلا رنګونه لرې.

مګر افسوس ای بیا افسوس چې زیات عمر او ډېر پایښت نلرې او زموږ په باغو کې ډېر وخت نه تېروې.

ته د پسرلي هغه ښکلې سوغات ئې چې ډېر ژر ای په یوه نری شمال ژړېږې او نه پسرلي سره هم وداع کوې.

ما لا ستر ګې ښې نه وې غړولې؛ په مړو ستر ګو مې درته نه وه کتلي؛ ستا په ننداره لا نه وم موړ سوی، چې ستا پاڼې په مځکه توی سوې او د ونو ښاخونه لغړ سوه.

زه نه پوهېدم چې وخت او فرصت دومره ژر تېرېږي او هرڅه په راتلو او تېرېدو کې دي.

کله د سپوږمۍ په شپو کې به مې خوب نه کاوه او تر سهاره به مې تا ته کتل.

د وخت او زمانې سېر تل همدغسې جاري دی او هیڅوخت توقف نه کوي؛ مګر سړی دا سېر د شګوفې په وخت کې ښه محسوس کړی او په دغه ټکي باندې ښه پوهېږي.

د شګوفې ژر تېرېدل سړی پوهوي چې باید د فرصت په ډېره ټکه ارنظر لاندې ونیسي او له غفلته ځان وژغوري.

ډېر افسوس دی، که دغه د رنګ او



« د ۲۱ مخ پاته »

باغ » په یوه ښکلې او حساسه برخه کې یو آزاد تیاتر هم جوړ سوی ؤ چې هلته هرڅوک بېله کوم امتیاز څخه ورتلای شو.

د هند د تاریخي پاڼو څخه معلومېږي چې دی د هند د آخیرني پاچا «بهادرشاه» معاصر وو.

ښکلیتوب کاروان ته سړی په څیر څیر نه ګوري او د عمر تېرېدو ته زه ملتفت کېږي.

[فیضي]

دعزیزاحمد [ ترقي ] ژباړه

# جیوردانو برونو

په پخوا وختو کې د ایټالیا څخه و سویس ته تګ ډېر مشکل وو، ځکه‌دا دوه مملکته د آلپ دغرو لوی‌سلسلې یودبل سره‌جلا کړیدی. اوږدغو باریکو او خطرناکو لارو کې به‌خلګ دلوړو اوژورو ځایو څخه تېرېدل .

پیسه‌داره او بډایان خلګ به د کچرو او نورو باروړونکو حیوانـاتو په واسطه‌ددې اوږدو او خطرناکو لارو څخه تېرېدل اود

هغو منطـقو استېدونـکو کوم‌چې‌دوی‌له هغومنطقو څخه‌تېرېدل و دوی‌ته به‌ئې دلاری‌هدایت ورکاوه .

فقیر او بېچاره‌خلګ به پیاده تلل اوکله به‌ئې لار ورکه‌کړه‌اوکله به‌په‌واورو اوېخېدو کې دیخ له‌لاسه‌وچ

سول. او یا به له‌کومه‌لوړ ځایه څخه و یوې کندې‌یا

شېلې ته‌ولوېده او یا به‌ګر سره‌ورګ‌سوه پدغه صورتو

سره به بې‌توانه خلګ مړه کېدل اود ژمی‌دا سرسختنه یخ‌دمرګ‌او ورکېدو نښانه وه .

سپور اوپیاده مسافرانو به لوی، لوی کاروانونه تشکیلول، چې‌وکولای‌شي د لار نیونکو او غلو څخه چې په هغه وخت کې به‌ئې د مسافرانو دتګ‌لار نیولې‌وه اودوی به‌ئې وژل‌اوشیان به‌ئې‌ځینې‌وړل‌دخپل ځان‌دفاع‌وکړي .

د ۱۵۷٦ کال په ژمي کې یو ایټالوی ځوان چې‌د مذهبي لارښوونکو کالي ئې اغوستي‌وه

اودیوه کاروان سره چې‌د‌سویس وخواته تللی ملګری‌سو.

په‌هغو‌ځایو کې چې به کار- وان اړول، دا ایټالوی‌ځوان به له‌خپلو سفري ملګرو څخه جلا کېدی او په‌یوه‌ګوښه او تاریک

ځای کې به کښېنستی. په‌عمومي خبرو کې ئې‌ګډون نه کاوه،فقط که‌به‌چا سوال ځینې‌وکړ جواب ئې ورکاوه اود خبرو کولو په

وخت کې به‌ئې د خپل کوسي په لمن‌ځان پټ کړ . ده چې په‌لار کې‌ګوښه‌ګیری کول او په عمومي

خبرو کې ئې شرکت او ګډون نه کاوه سبب ئې داؤ چې‌د پلېسو مذهبي مشرانو او نورو کسانو څخه‌ئې ځان‌ژغوری.

او ده‌د سفرملګری د سفرتر پایه پوری ددې ایټا- لوی ځوان په‌رازونه‌پوهېدل

امـا دادی چې‌زه اوس و تاسونه نقل کوم :

ددې ځوان نوم [جیور- دانو بر .نو]ؤ اوده دخپلې (آزادفکری) په‌علت ډېری سختي جزاوی ولیدی دښل زېږېدو دځایه څخه یعنی

د ایټالیا څخه تښتېدلی ؤ اوده‌ده آزادفکری داوه‌چې جرئت ئې‌وکی په‌هغوشیانو کې کوم‌چې د کلیسا دخوا

منـع سوی او اجـازه نه ورکول کېده . ده په‌هغو مسایلو کې‌دفکر کولوجرئت وکی .

جیوردانـوبـرونو پـه ۱۵۴۸ کال کې د «نولا» په ښـارکی چې د ایټـالیا د کوچنـیو ښارو څخه دی سترګې پر نـړۍ خلاصی

کړېدی او په کوچنيوالي کې يتيم سو. د ده د خپلوانو څخه يو ده تربيه پرغاړه واخيستله.

په هغه وخت کې چې په چا علم او زده کړه کول نو مجبور ؤ چې کشيشانو او نورو مذهبي مشرانو ته مراجعه وکړي. او د هغه وخت تحصيلات مربوط په ديني او مذهبي علومو سره وه.

د کاتوليك مذهبي مشران بيا پر ډېرو ډلو وېشل سوي وه او په دې ټولو طايفو کې قوي طايفه د دومينيکان طايفه وه. و جيوردانو ته د دومينيکان د طايفي غړو تعليم ورکړ.

جيوردانو ډېر ځيرك او هوښيار سړی ؤ او په دې باره کې به ئې ځان ته زيات معلومات حاصلول. لومړی د دومينيکان د طايفي د يوه غړي په حيث ؤ او وروسته بيا د کشيش و درجې ته ورسېدی.

جيوردانو برونو حتی په ځوانی کې د کليسا د تعليماتو په باره کې فکر کاوه او ډېری نکتی دده په نظر غلطي ورتلې.

يوه ورځ د کتابخاني په يوه کونج کې په يوه لېري او پټه الماری کې يو کتاب پروت ؤ چې چرمي پوښ ئې درلودی او ګرد و دوړي ئې نيولي وه. شاوخوا ځنې ئې موږکانو خوړلي وې ده پيدا کړ، او کله چې دا کتاب ئې خلاص کې و ئې ليد نو د ايټالوی عنوان څخه ئې وپوهېدی چې دا د [نيکلا-کپرنيك] (۱) اثر د «آسمان د جسمو د ګرځېدو په باره کې» دی.

جيوردانو ددې کتاب په باره کې ډېري خبري اورېدلي وې او دغه ؤ چې دغه او يه خزانه په لاس ئې کښېوته او وکولای ئې سوای چې دده آثار دده د ژبې نه بلکې د مذهبي مشرانو د ژبې واوري.

برونو به دا کتاب په کتابخانه کې پټ وایه، او بيا به ئې په آرامه سره چې څوك به نه ؤ پخپله حجره کې په خلوت سره دروازه به ئې قلف کړه او د کتاب مطالعه به ئې کوله برونو د کپرنيك ددې روښانه آثارو څخه په تعجب ؤ او نه ئې سوای کولای چې دده د ځلانده

آثار دی د جيوردانو په فکر کې پاته شي او د اختياره څخه ئې وو تل او دغه د تعجب ډك کتاب چې ئې کتلی ؤ د کپرنيك دغه آثار ئې د دومينيکان د طايفي و يوه غړي ته کښېنوده او هغه مذهبي مشر د برونو هغه دلاوري او حقيقي خبري د دومينيکان د طايفي مشر يا رئيس ته وويل او خبر ئې ورکړ.

دغه ځوان په نتيجه کې ډېري سختي جزاوي وليدلې او مجبوره سو د کشيشي د چارو څخه ئې استعفا وکړه او د وطنه څخه وتښتېدی.

اما د مذهبي لار ښوونکو يا مشرانو جامه ئې لا اغوستي وه ځکه چې په مملکت کې په زرو، زرو مذهبي مشران وجود درلودی او خلکو د دوی څخه ډېر ډار او د دوی احترام ئې کاوه او په درنه سترګه ئې ورته کتل.

دغه مذهبي جامې د جيوردانو د دفاع د پاره ډېره ښه وسيله وه او په دغه مسافرت کې يو پټ ځای ته ولاړی. په کلو، کلو ئې نسوای کولای چې خپل مملکت ووينې. برونو خپل

---

(۱) نيکلا کپرنيك: د لهستان د لويو او مشهورو ستورو پېژندونکو څخه دی چې په ۱۴۷۳ کال کې زېږېدلی او په ۱۵۴۳ کال کې سترګې د نړۍ څخه پټې کړېدی.
«مترجم»

پاته عمر د کوپرنیک د آثارو په خپرولو کې تېر کړ. که څه هم دی د کوپرنیک شاګرد نه ؤ خو د کوپرنیک آثار ئې تعقیب او تکمیل کړه او دهغه په انتشار ئې پیل وکړ. دده تصورات د کوپرنیک تر تصوراتو ژور وه.

برونو به ویل چې نه یوازې ځمکه پر خپل محور باندې څرخي بلکې لمر هم پر خپل محور باندې څرخي. دده دا نظریه وروسته تر ډېرو کلونو پس له هغه چې دی مړ سو تائید سوه.

دغه رنګه ده ویل چې ټولې لیرې سیارات هم د لمر پر شاوخوا باندې راګرځي او هغه نوې سیارې چې تر اوسه پورې ندې پېژندل سوې ټولې پر لږ موده وروسته به کشف شي.

لومړنۍ نوې سیاره یعنې «اورانوس» دوه سوه کاله وروسته د برونو تر مرګ او لږ موده وروسته تر هغه د «نیپتون» او (پلوتو) او په سلو کوچنی سیاری د «آسترو ئید» په نامه کشف سوې او په دغه ترتیب سره ددې نابغه سړي پېشګوئي حقیقت او ریښتیا سوه.

کوپرنیک و لیرو ستورو ته توجه نه وه کړې. برونو عقیده درلوده چې د هر ستوري لوی والی د لمر د لوی والي په شان دی. او شاوخوائي سیارې په حرکت کې دي موږ په دې سبب نسو کولای چې نوري سیارې او ستوري ووینو چې د هغوی فاصله زموږ څخه ډېره لیرې ده. او د هر ستوري لوی والی زموږ د لمر د لوی والي سره برابر دی او ددې ستورو شمېر په فضا کې ډېر زیات دی.

برونو هم دغه رنګه عقیده درلوده چې دغه ټول موجودات چې د نړۍ په فضا کې پراته دي شروع او آخر لري او هر یو پیوسته د تغییر او تبدیل په حالت کې دی. اما د عیسوي مذهب لارښوونکو او مشرانو وخلکو ته داسې تعلیم ورکاوه چې د کائناتو تغییر نه قبلېدونکی دی او همېشه چې په هغه شکل پیدا سوي وه تر پایه پورې به پر هغه شکل سره وجود لري.

برونو فوق العاده هوښیار او ځیرک سړی ؤ. ده تنها د فکر په قوت داسې شیان پیدا او کشف کړه چې وروسته تر ده ستورو پېژندونکو د تلسکوپ په واسطه کشف کړه.

حتی نن ورځ د اتصور ډېر مشکل دی، چې جیوردانو برونو څه قوي تغییر او تحول د نجوم په علم کې ومنځ ته راوړی دی، ځکه کې بندي ئې د بندي-خانې څخه خلاص کړ. او دا بندیخانه د تنګو او تاریکو ځایو او دېوالو پر ځای د نړۍ په فضا کې د نړۍ د اد تعجب او حیرانونکې دنیا چې نه ئې شروع معلوم ده نه ئې آخره مشاهده کېدای او یو منجم چې «کېپلر» نومېدی او لږ موده وروسته ئې تر ده ژوند کاوه پر دې باندې اقرار وکړ، هغه وخت چې ما ددې مشهوره ایټالوی نوښتی مطالعه کوله سر مې دوران وخوړ او فکر مې په یو داسې فضا کې والوتی چې نه ئې مرکز معلوم ؤ او نه ئې ابتدا معلومه وه او نه ئې انتها معلومه وه و بېرته په ډېره بېره او وحشت اخته سوم.

کلیسا جیوردانو ئې خپل ډېر سخت مخالف او دښمن شمېرې. د برونو دا خبرې چې نوري بې شمېره نړۍ وجود لري او د نړۍ فضا نه ابتدا او نه انتها لري او د کشیشانو ادعا پدې باره کې چې د عیسویانو مذهب پر دغو خبرو او شیانو ولاړ دی

ور رد کوی ئې . او هغه ادعا نامه چې د کلیسا له خوا څخه پر برونو وه-۱۴۰ مادې ئې درلودې.

د کلیسا لارښوونکو او رهبرانو دی تکفیر کړ او د مملکتوو واکمنو ته ئې یو په بل پسې خبر ورکړ چې د برونو د مسافرت جلوگیري وکړي او دی پخپل مملکت کی پرېنږدي . هرڅوني چې به برونو مجبور و سفر او مهاجرت ته کېدی په هغه اندازه ئې دخلکو افکار ور روښان کول او دغه خپل صحیح تعلیمات ئې د نړۍ په مملکتو کی نشرول.

برونو ډېره موده په تبعید کی تېره کړې وه، او دائې آرزو درلوده چې خپل مملکت ایټالیا ته ولاړ شي او پخپل مملکت کی هم دا خپل تعلیمات منتشر کړي او د ده دښمنانو او مخالفینو د دې مشهور ستوري پېژندونکی د دې موقع څخه استفاده وکړه .

د ایټالیا د اشرافو د طبقې څخه یو چې (جیوانی-موسینګو) نومېدی د برونو ډېری لیکنی چې د اروپا په بعضی مملکتو کی چاپ سوی وې سره راټولی کړی او د ده توجه ئې ودې ته جلب کړه او وبرونو ته ئې خط ورواستاوه او خواهش ئې څېنی وکړ چې بېرته خپل مملکت ته راسه او خلکو ته زده کړه او تعلیمات ورکړی پدغو چمو سره ئې ده ته چالونه برابر کړی وه . ولی چې بېرته راتګ د دې تبعیدی وخپل مملکت ته ډېر خطرناک ؤ، او د دې د پاره چې برونو د دوی پدې تو طئو خبر نشي نو موسینګو وده ته ځانته اطمینان ورکړی ؤ چې څنګه یو سړی به خپل استاد و دښمن ته په لاس ورکوی او دغه ډول ئې اطمینان ورکړی چې زه تا دټولو دښمنانو څخه ژغورم. برونو د ده په خبرو اعتماد وکړ او خصوصاً ئې په بېګانه مملکتو کی ډېری سرګردانۍ، تکلیفونه او مایوسی لیدلی وې.

(پاته لري)

له هري خوا:

# د ماتم نښانې

په نړۍ کی ډېر تور رنګ د ماتم نښانه ده نور هیوادونه هم سته چې د دغه منظور لپاره ئې نور رنګونه ټاکلی دی چې لدغه جملې څخه برازیل سور رنګ، په چین او جاپان کی سپین رنګ د سوګواری نښانه ده، او د جنوبی افریقا په یوه هیواد کی ژېړ رنګ د ماتم لپاره او همدا رنګه د اسټرالیا په جنوبی جزایرو کی شین رنګ د ماتم په ورځو کی استعمالوی.



## ژوندی مصنوعی لاسونه

مصنوعی فکری اعضا لا ترنن ورځې پوری دومره حساسیت نلري، څومره چې طبیعی نور مال اعضا حساس دی.

له همدغه کبله څخه انسانان په نړۍ کی ودې ته متوجه سول چې «بیو-الکتریکی (ژوندی برقی) لاسونو په عوض د کبرنتیك په مخصوصو حرارتی ترتیباتو مجهز لاسونه جوړ کړي.

د کبرنتیك لاسونه په خپلو مخصوصو حرارتی ترتیباتو سره کولای سی چې د یو شي شکل، تود-والی او سوړوالی حس کړي.

# د خندا !! پلوشې

محمد ناصر [ نصرت ]

### له شیطان څخه پوښتنه

یو سړی له شیطان څخه پوښتنه وکړه: چې له چا څخه ډیر ممنون یې؟
شیطان ورته وویل: چې د بې لمانځه خر کار څخه .

سړی بیا وپوښتل چې ولې؟
شیطان جواب ورکړ، ددې دپاره چې زه ورته وایم: لمونځ مه کوه؛ هغه خپل مخ لاهم نه مینځي .

✡✡✡

### د نهو طلاقو معجون

یو سپین ږیری چې درې ښځې ئې درلودلی طبیب ته ورغلی او ورته وایې ویل چې: مدام مې ملا او مثانه درد کوی علاج ئې څه، او څه شی وخورم چې ښه سم؟

طبیب ورته وویل: علاج ئې د نه طلاقو معجون دی .

✡✡✡

### ډاکتر او اشپز

د یو ډاکتر دا عادت ؤ چې هر کله به د خپلو ېسه‌دارو ناروغانو کره تی، لو مړی به‌د آشپزانو دخوښې دپاره اشپز خانې ته ورغلی او چې هر یو به ئې په‌غېږ کې ونیو، ورته‌وبه ئې ویل: که تاسی نه‌یاست زموږ ډاکترانو کار خراب دی، ځکه ستاسی ناکاره غذاوی چې هر څوك وخوری هغه ناروغه شی ، زموږ دپاره‌یو اسباب برابر، مشتریان مو زیات او ډیره ګټه هم کوو .

✡✡✡

### ډیره ښه عضوه

کله چې لقمان‌حکیم غلام ؤ نو یوه ورځ ئې بادار ورته‌وویل چې: ولاړ شه پسه‌حلال کړه او‌دهغه ډیره‌ښه‌حصه راته‌راوړه.

لقمان‌حکیم، پسه حلال کړی دهغه‌زړه او ژبه ئې و بادار ته کېښېښووه.

بله‌ورځ ئې بیا ورته‌وویل چې: ولاړشه پسه حلال کړه، او‌دهغه ډیره بده‌حصه راته‌راوړه.

لقمان‌حکیم، پسه‌حلال کړی‌او پدغه پلا ئې بیا د پسه‌زړه او‌ژبه ورته وړاندی کړه.
بادار ئې ورته‌وویل: چې‌دا څه کیف دی؟

لقمان‌حکیم ورته وویل: په هغه صورت چې پاك وی تر زړه او ژبې بل ښه شی نه‌شته او که‌چیرته ناپاك وی نو تر زړه او ژبې بیا بدتره شی نه شته.

### خوب او بیداري

سلطان سلیمان عثماني پاچا کله چې د بلګراډ د ښار نیولو په عزم رهي ؤ یوه بوډۍ ښځه ورته در پېدلې وېي ویل: کله چې زه بیده وم د پاچا نوکران راغلي، زما غوا او پسه چې دغه مې ټوله هستي وه بېدلې دي.

پاچا ورته وخندل او وېي ویل: معلومېږي چې په ډېر درانه خوب بیده وې چې دغلو کربښ پل دې هم نه دی اورېدلی؟

بوډۍ ورته وویل: هو! زه پدې ګمان چې په ملک کې مو پاچا بیدار دی؛ نو په خواږه خوب بیده وم.

پدې خبره پاچا خوښ سوی، اند بوډۍ ټول تاوان ئې ور کړی او هم ئې له ځانه راضي کړه.



### غل او سکندر

یو دریائي غل ئې د «سکندر» حضور ته درولی او هغه ورته وویل: آیا له دې ځخه چې «غل» ئې خجالت نه باسي؟

غله په جواب کې ورته وویل: حق لري ځکه اوس چې زه یوه کښتۍ لرم غل یم. لېکن که مې زیاتې کښتۍ درلودلای نو «فاتح» کېدلم.



### سوسیالېزم، کمونېزم، فاشېزم

له «ګواسترګو» ځخه پوښتنه وشوه چې دغه درې مسلکونه ځه فرق سره لري؟

جواب ئې ورکړ: فرض به کړو چې موږ ځلور غواوې لرو، سوسیالېزم له هغو ځخه دوې غواوې د جامعې د پاره له موږ ځخه اخلي او دوې ئې راپرېږدي.

کمونېزم ځلور سره غواوې را ځخه بیایي او کوم کار چې موږ کوو د هغه اجوره راکوي.

فاشېزم ځلور سره غواوې زموږ په اختیار کې پرېږدي. لېکن دوی ئې پخپله لوشي او شیدې ئې هم وړي.



### ډاکتري

رنځور: ډاکتر صاحب! بدن مې ټوکر، ټوکر او ډېر درد هم کوي. یو ښه دواء راکړه چې علاج مې په وشي.

ډاکتر: وبخښه وروره، زه د طب ډاکتر نه یم بلکې زه د حقوقو ډاکتریم.

رنځور: نو ښه، ستا دې په خدای [ج] قسم وي که به زما غصب سوي حقوق نه را اخلې!.



### الو، الو

یو ډاکتر د شپې پر درو بجو د ټیلفون زنګ له خوبه ویښ کړی او وختې چې ګوشکه ئې پورته کړه معلومه شوه چې یوې ښځې ټیلفون ورته راوهلی دی.

ډاکتر: بلي ځوك یاست او ځه شکایت لرئه؟

ښځه: زه د پلانکي نمره کوره ځخه خبري کوم او شکایت مې دادی چې بې خوبه شوې یعني خوب نه راځي.

ډاکتر: ښه، لطفاً د ټیلفون ګوشکه په غوږ کې و نیسه چې «الو، الو» درته ووایم.



ښاغلی بېنوا

# نوی ننداره

دا د طبیعت قانون دی چې هر زوړ خپل ځای «نوي» ته پرېږدي؛ زاړه به ځي او نوي به راځي.

ښوال د بڼ زړې ونې باسي پر ځای ئې نوي نهالونه کښېنوي.

خزان د ونو زړې پاڼې رژوي او پسرلی د هغو پر ځای نوي تازه پاڼې شنې کوي.

دزړو کلاؤ زاړه دېوالونه نړېږي او پر ځای ئې نوي عصري کوټې ودانېږي.

همدا راز د زړو فکرونو زړو رواجونو ځای نوي فکرونه او نوي رواجونه نیسي.

هو! د همدې طبیعي قانون په اغېزه په ټولو کائناتو کې تل یو ډول تحول لیده کېږي، کله پر لویو تورو غرونو د ژمي د سپینو واورو د جمود څادر غوړېدلی وي؛ او کله ئې بیا په پسرلي کې د ونو تاج پر سر او لمنه ئې له رنګارنګ ګلونو څخه ږکه‌وي.

کله د دنیا پر یو ګوټ تیاره او پربل رڼا وي؛ او کله بیا په تیارې پسې ځي او بیا د تیارې پای رڼا وي.

یو ګړی د غم ساندې اورېدلې کېږي او بل ګړی بیا د سرور او خوښۍ سندرې، یو وخت آسمان په تورو اوریځو پټ وي؛ او بل وخت ئې بیا مخ د هینداري په شان روڼ ښکاري.

یو زمان سمندرونه طوفاني وي؛ تر خولې د مستۍ ځګونه باسي، خو بل زمان بیا د آرامو ما شومانو په څېر د سواحلو په لمنو کې آرام غځېدلي پراته وي.

دا ټول ثابتوي چې: [تحول او بدلون د طبیعت د اقتضائي قانون اساس دی!] ځکه نو لازمه ده چې د زاړه ژوند زړې نغمې خاموش کړه سي او د نوي ژوندون نوي سندرې وغږولی سي.

همدا راز نو د نوي ژوند په صحنه کې باید زړه ننداره ختمه سي او د هغې پر ځای ننداره‌چیانو ته د نوي ژوند د رمزونو نوې ننداره وښووله سي.

هو! نور نو موږ ته نه ښائي چې د خپل نوي ژوند په نوې صحنه کې زړې نندارې وګورو.

دا د طبیعت د اقتضائي قانون مخالفت دی او د طبیعت د قانون مخالف کول د ځان محوه کول دي.

موږ باید د طبیعي قانون سره سم ځانونه وخوځوو او ځانته د نوي ژوند د نندارتون ور پرانېزو داسې ونه‌سي چې د نوي ژوند نندارتون پرانستل شي او موږ لا په همغه زړو ننداره بوخت پاته سو.

راځه!

نوې ننداره زموږ په انتظار کې ده.

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR: ZALMAI 'BARAK'

(APRIL) 1968

GOVERNMENT PRESS

مؤسس: محمدولی [زلمی]

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتی مؤسسه

مسئول مدیر: زلمی (بارک)

کندهار

میاشتنی خپرونه

تاریخی ،اجتماعی، علمی، ادبی

اداره: دشهیدانو واټ

د تاسیس کال ۱۳۳۹
د۹ کال لومړی ګڼه
پرله پسی ګڼه ۹۱

کالنی بیه

په کندهار کی [۲۸] افغانی

دهیواد په داخل کی[۳۲]د

په دباندنیو هیوادو کی یوډالر

دکندهار دولتی مطبعه